سال ۱۳۴۷
(۷)

## ددې ګڼې مضامين





د افغانی سرې مياشتی عالی رئيس والاحضرت شهزاده احمدشاه چې ددوی په پاملرنه نوموړی خيريه مؤسسی په زړه پوری انکشاف کړی او په هيواد کی دننه او دباندی ئې د مصيبت ځپلو سره مالی مرستی او د قدر وړ خدمتونه کړيدی

کندهار
د ۱۳۴۷ لمریز کال د تلې میاشت

# انسانی علو

وایی چې انسان اشرف المخلوقات دی او دا چې د کائناتو پر لوی جهان ئې د پاداری پرم پروت دی پوازې د همغو فضایلو نتیجه ده چې پاك خدای [ج] د بني آدم په نهاد کې په ودیعت سره ایښی دی.
هو! همدغه حضرت انسان یوازنی الهی مخلوق وو چې د (الست بربکم) څخه ئې الهی امر نهی تنه غاړه کښېښوده او ټول آسمانی احکام او اجتماعی قیودات ئې د ټولني په خیر قبول کړله او څانته ئې د یوه اجتماعی مخلوق صفت کسب کې یعنې تر څخان ئې نور مقدم کړله او یادا څه چې پر څخان ئې لوړوی همغه پر نور وهم پیرزوالی.
د همدغه مقدس او شریف احساس په وجه د خپلې ټولی نا توانی سره سره بیا هم وکړای سوای چې د دې خلاوینې کرې د کامرانۍ تاج پر سر کړي.
بلې! انسانی ژوند که مره یو د بل سره او بل شو یدی چې د شرق لوی فیلسوف حضرت سعدی [رح] هم دا ندوړ له معنی چې وایي: «بني آدم اعضای یکدیگرند» واقعاً بشری کتله همغه جسم دی چې د افرادو له مالیکو نو څخه په وجود راغلی ده او د هری ټوټې درد او نا آرامی د ټولو د درد او نا آرامی موجب ګرځی او یوه بد مرغی حتماً د نورو نېکمرغی مختله کوی
څکه نو دا د ټولني د هر غړی فطری او طبیعی وجیبه ده چې له نورو همنوعانو سره غمشریکی وکړی او د دې د پاره چې دغه فردی همکاری او نوع پرستی په منظم او مؤثر ډول اجراء شي نو یو لړ اساسی تشکیلات چې د انسانی عاطفی سترمظاهر بلل کیږی په وجود راغلی دی چې یو ډول ئې د سرې میاشتې خیریه مؤسسه ده چې (۱۰۴) کاله پخوا د یوه سویسی خدای پاری عالی انسان «هانری دونانت» له خوا ئې بنسټ کښېښود ل شو او تر اوسه پورې ستې نړی ئې دغې عالی مفکورې د تقویې او تعمیم په لاره کې راوبلل بونږی. او همدغې عالی مفکورې نا ئید کړیدی چې د اېکه مرغه زموږ په ګران وطن افغانستان کې هم د سرې میاشتې په نامه یوه خیریه مؤسسه منځ ته راغلی ده چې پدې وروستیو کلو کې ئې د ګران والاحضرت شهزاده احمدشاه په لار ښوونه په زړه پوری انکشاف کړی او په هیواد کې د ننه او د باندې ئې د قدر وړ خدمتونه کړیدی البته دا د هر افغان وجدانی او ایمانی وظیفه ده چې د بېوزلو همنوعانو سره د مرستې په غرض د دغې خیریه مؤسسې په مادی او معنوی تقویه کې تر خپله وسه پورې څان ونه سپموی څو د وطنوالو د دغې ګډې او شریکې مرستې له لارې د افغانی سرې میاشتې ټولنه تر څخو از یات د خدمت کولو قدرت پیدا کړی.

د ډرامـاتیك ادب او هنر له کتاب څخه:

لیکو نکی ۲. [عطائی]

# په سیکولوجی

## لحاظ د ډراماتیك هنر څېړنـه

کله چی د کوچنیانو ړی‌ته په‌غور او تعمق څیر شو نو وینو چی د هغو په بسیط ذهن کی دیوه د پېښو (دهن کجی) له عمله څخه د بل شدید عکس العمل را پاڅېږی.

همدا ډول دهری اشارې څخه‌دوی په‌خاص ډول سره متحسس کېږی.

شوخ کوچینیان همېشه په اصطلا ح ځان قـواره جوړوی چی اکثره دنورو کوچینیانو دخندا او تماشی باعث ګرزی خو کله‌چی د کوم کوچنی حـرکات د مسخرې په‌ډول ورغندی نو د هغه د اعصابو موازنه خرابېږی، او عصبیت ځینی ځر ګندېږی او بیا ئې ږ ځان پام‌وی او داسی حرکت نه‌کوی چی‌د نورو شوخو کوچنیانـو توجه‌ځان‌ته جلب کړی او مسخره سی.

د ډورتنی ي. لنډ مثال څخه موږ دحیات په عادی صحنه کی هم‌قضاوت کولای سو داسی عمل او عکس العمل چی‌د کوچنیانو په روحیاتی عالم کی تاثیر لری نو د لویانو په ړه کی هم بې تاثیره نه‌بلل کېږی.

که په‌یوه طبقاتی ټولنه کی دهغی د افرادو عمل د مثال په ډول ډاندی کښېږدو نو موږ وینو چی د یوې ضعیفې او کمزوره طبقې څخه استثمار کوی او د دې دواړه طبقو داخلاقو کامل تباین ددوی د نفسیاتی جوړښت جلا والی هم‌ښیی، ددې دواړو طبقو د نفرت او الفت معیار و نه‌سره بېل وی او د انو دیوه پـاخه ډراما لیکونکی وظیفه ده چی دغـسی اجتماعی روابطه‌د سیکالوجیکی نقطهٔ نظره تحلیل کړی او بیان‌خپل ادبی هنر محصول وړاندی کړی که‌دغسی نفسانی اړخونه‌و پېژندل سی نو یقین دی چی د ټا کلی ټـولنی روحیات غـلایق به‌ئې تامین کړی‌وی.

کله چی یو ډراما پر کوم ستېیج تمثیل کېږی نوموږ ویلای سو چی‌یو لړ «پېښی» دی چی‌د ماجرا ګـانو حکایت کـوی او حرکت چی‌د کوم ممثل څخه صادرېږی نو هغه‌جوخت د ننداره کونکو پر روحیاتو تاثیر لری.

مثلا په یوه حرکت د ننداره کونـکی په حـال کی داسی تغیر راولی چی د خندا ئې پسر پښتو رګو لاس نیولی وی، په‌بل حرکت ئې‌خوله دتعجب او حیرت څخه‌خلاصه پاته‌وی، او په یو بل حرکت ئې تر سترګو اوښکی راروانی کړی.

د ممثل دغه‌حرکات او په ننداره کونکی کی د هغو انعکاس ټول هغه سیکا-لوجیکی تاثیرات دی چی‌د ممثل د حرکت او ننداره-کونکی دذهن تر منځ رابطه قائموی.

د اجتماعی سیکالوجی په‌رموزاتو باندی بلدیت‌د یو ډراما لیکونکی‌د مهمو وظایفو څخه شمېرل کېږی

د مثال په‌ډول په‌یوه ټولنه کی ملوك الطوایفی سیستم حـاکمیت ولـری هلته د زمیندارانـو اقلیت او د بزګرانو اکثریت او ددوی سیکالوجی ددوی د تولید او توزیع په روابطو کی

دریم مخ دی وکتل شی

د عبدالصمد [نصرخواه] ژباړه

# د سلطان محمود لومړنی ژوند

ابوالقاسم محمود (۱) د سبکتګین زوی دی د محرمې د میاشتې په لسمه په سنه ۳۶۱ ه چې د ۹۶۱ ع کال

د نوبېر دوهمې سره مصادفه ده پیدا سویدی او مور ئې د زابلستان د یوې نجیبې کورنۍ څخه وه او موږ ته د

هغه وخت د متداوله علوم زده کړه لکه چې د یوه شهزاده لایق وی دهغه عصر د یوه او دانشمند قاضی

بوعلی حینیانی د پلار (۲) څخه کړېده محمود د علومو په مختلفو شقوقو کی بالخصوص په دینیات شریف

کی کافی معلومات درلود قرآن کریم (۴) ئې حفظ او یا دوو په فقهه او احادیثو پوه ؤ د سیاسی تعلیم او تربیې له

لحاظ هم ډېر پښه ؤ ځکه سبکتګین پخپله ده ته د

مملکت د اداره کولو اصول ورزده کړی ؤ دهغه وخت

پندنامه چې په رساله سره معروفه ده ده ته ابلاغ سوی وه همدا وجه وه چې محمود

د مملکت په اداره کولو کی ښه تجربه او لوی لاس درلود همدا رنګه هغه وخت چې سبکتګین د بست وجنګ ته تللی خپل زوی ئې محمود چې د ۷ کالو په سن ؤ په

غزنی کی په وکالت پرېښود او کرمانی بوعلی ئې دده وزیر کړ خو څو کاله وروسته بیا د زمین-داور د ولایت حاکم شو محمود د

خپل عصر په جنګی فنونو کی تام مهارت درلود او نومیالی توریالی (شمشیرباز) ؤ په نښه ویشتلو او نیزه جنګی کی ئې ساری نه درلود

او په هغه فوج کی چې د غوریانو د سرکوبی لپاره تللی ؤ ښه امتیاز ئې وګاټه په دغه وخت کی چې دده عمر و ۱۹ کالو ته رسېدلی ؤ په هغه

جنګ کی چې دده د پلار او جیپال په مابین کی په کال ۳۷۶ ه ۹۸۶-۹۸۷ ع کی په لغمان کی وسو محمود په دغه جنګ کی ډېر مهم رول

ولوباوه خو په ۳۸۰ ه ۹۹۰-۹۹۱ ع کال کی ځینو مفسدینو د پلار او زوی په منځ کی نفاق واچاوه او په نتیجه کی محمود د غزنی په

حصار کی بندی شو مګر دغه بد تفاهم ژر ورک شو او وروسته تر څو میاشتو بیرته خوشی شو او د

پلار له خوا د ډېر لطف او عنایت مورد وګرزېد . څو کاله وروسته یعنی په (۵) ۳۸۴ ه او ۹۹۴ ع کی د فایق او

ابوعلی سیمجوری په جګړو کی ئې شرکت وکړ او یو لایق جنرال شو . د دغو خدمتو له امله سبکتګین د

سیف الدوله لقب ورته ورکړ او د خراسان د ټوله لښکر فرماندهئې کی مګر پسله لږ مودې څخه کله چې محمود

---

۱) طبقات ناصری ۷۰ مخ .

۲) آمین احمد رازی «بیهقی ۶۰۹ مخ » .

۳) حاجی خلیفه په دوهم ټوک ۴۲۷ مخ کی حتی داسی ګمان کوی چې د شریعت په باب ئې کتاب لیکلی دی .

۴) عتبی ۸ مخ .

۵) مجمع الانساب لومړی مخ او ۴۴۵ پاڼه او بیهقی په ۲۵۷ مخ کی ، فرخی په اول مخ او ۲ پاڼه کی غالباً دغه واقعی ته اشاره کړېده .

لا په نیشاپور کې وُ ابوعلي سیمجوري او فایق پر محمود حمله وکړه او محمود ئې د نیشاپور په تخلیه مجبور کړ خو

محمود څو میله تر ښار د باندې اردوګاه جوړه کړه او د خپل پلار د کومك په انتظار کې وُ مګر فایق او

ابوعلي سیمجوري جګړې ته دوام ورکړ او د محمود په فیلانو ئې ټوله ښار و نیو په همدغو وختو کې چې د

سبکتګین امدادي فوجونه ورسېده نو په ۲۰ د جمادی‌الثاني ۳۸۵ھ او ۹۹۵ع کې د دوی فوجونه سره مخامخ

سول او ډېر سخت جنګك و نښت او په پای کې پر و وینو تو یولو د دښمن لښکر مغلوب او منهزم سول او د بو علي ډېر افسران

د فاتحینو په لاس کښېوتل او د هغو هاتیانو (فیلانو) سره چې د ښمن نیولي وه مبادله سوه . (۱)

د پلار او زوی د اقتدار ډېر والي د ځینو دسیسو و منځ ته راوړ او سبب سو لکه چې عبدالله ابن محمد ابن

عزیز وزیر امیر نوح ترغیب او واداره کړ چې ټوله هغه ځایونه چې دده تر لاس لاندې وې و نیسي او یا لااقل

یوه برخه د هغو څخه تصرف کړي مګر امیر نوح له دغه کاره انکار وکړ خو کله چې ایلك‌خان د بخارا و خواته حرکت وکړ همدغه وزیر بیا د سبکتګین د ایذا لپاره

ځینې زمینې مساعدې کړې خو بالاخره سبکتګین د دغه وزیر د خلع کولو لپاره محمود د ۲۰ زرو عسکرو سره مامور کړ او ده هم دا

دنده په موفقانه صورت انجام چې په عوض ئې بل وزیر وټاکل سو په دغه وخت کې بیا ابوالقاسم د ابوعلي سیمجوري ورور ځان د خراسان

قائم‌مقام و باله او نیشاپور ئې وینو خو محمود د پورتني اغتشاشاتو تر رفع کولو وروسته د خراسان و خواته حرکت وکړ اما ابوالقاسم بیله کوم جنګك

«د لومړي مخ باته»

مشخص کېدای سي همدغه ډول په یو داسي ټولنه کي چې هلته تولیدي قواوې انکشاف کړی وي او سرمایه‌داري سیستم د حاکمیت

په حال کي وي هلته بیا د اجتماعي سیکالوجي د پېژندني د پاره د تولیدي وسائلو مالك او کارګر روحیات پېژندنه غواړي.

ددوی آثار په لوی ارزښت نما ئحل کیږي چې د دغسي اجتماعي سیکالوجي په رڼا کي ایکل سوي وي .

څخه نیشاپور تخلیه کې او محمود خپل عسکر په خراسان کې متمرکز کړهٔ تر لږ مودې وروسته په ۳۸۷ھ او

۹۹۷ع کې سبکتګین چې مې کېدی خپل کوچنی زوی اسمعیل نومی چې د الپتګین د لور له بطنه څخه وُ خپل پر جای

(۲) و ټاکی او پخپل ژوند کې دده لپاره د ټولو اشرافو او امراؤ څخه ټینګه لوړه او بیعت اخستی وُ نو اسماعیل

د پلار تر مرګك وروسته بلخ ته ولاړ او هلته ئې د بادشاهی اعلان وکړ او هغه خزانه چې ئې د پلار د زحمتو او

کوښښو له امله منځ ته راغلی وه ددې لپاره چې مبادا د محمود سره کومه اتفاقي جګړه و نښلي او عسکر ئې ښه

جنګك او سر تیري وکړي ټوله خزانه ئې و خپلو عسکرو ته وو بښل . محمود د خپل پلار پدغه وصیت او فیصله راضي

---

۱) عتبی ۹۰ - ۹۱ مخ .

۲) نوټ: اسماعیل ددې لپاره بلخ ته ولاړ چې پلار ئې پخپل وصیت کې د غزني او بلخ ولایتونه دده ته سپارلي وه خراسان ئې محمود ته او د بست ولایت ئې و «نصر» ته ورکړی وُ .

نهٔ اوغوښتی چی د مملکت ټوله زمامداری پخپله غاړه واخلی د پلار تر مرګ وروسته دستی محمود ابوالحسن

حمولی ئیوې تعزیت نامی سره و اسمعیل ته ولیږه او په تعزیت نامه کی علاوه سوی وه. که اسماعیل دورور ولی

له امله د محمود پر عالیه حقوقو اعتراف وکړی نو باید غزنی محمود ته تسلیم کی او په عوض کی به د

خراسان او بلخ ولایتونه ورکړه شی او په نامه کی داهم لیکل سوی وه که څیری اسماعیل حقیقتاً او واقعاً

با کفایته او عسکری تجربه او لیاقت درلودای نو محمود به ابدآ د پلار له وصیت څخه انحراف نه وای کړی.

اسماعیل دغه پیشنهاد رد کی خو د هغه دې قضیی په اثر د محمود خسر عبدالحارث دفریغونی (۱)

چی د جوزجان حکمران و د پر کړ بښښ وکړ چی دا قضیه د مذاکرې او مصلحت د لیاری حل شی مګر اسماعیل و نه

منل نو ځکه محمود وغوښتل چی د توری په زور خپل مقصد حاصل کړی خو کله چی هرات ته ورسید

بیا ئې د مصالحی په توګه و اسماعیل ته پیشنهاد وکی خو

بیا هم اسماعیل انکار وکړ محمود وروسته د جنګ په تهیه کی شو خپل ورور ابوالمظفر نصر د بست حکمران او خپل اکا «بغراجوق»

د هرات حکمران او فریغون د ځان متحد کړه له بله پلوه ئې خسر (عبدالحارث فریغونی) هم پر ټولو قوائو سره دده مرستی ته حاضر

شو پدې ډول محمود ډیر مجهز شو او د غزنی و لور ته ئې عزم وکړ اسماعیل هم د غزنی د ساتلو لپاره د بلخ څخه حرکت وکی د مخه تر

دې چی د جنګ اور بل شی محمود دوروستی ځل د پاره په مصالحت اقدام وکړ مګر اسماعیل د محمود ټوله غوښتنی او مصلحت دده د

ضعف او کمزوری دلیل و نه وبلل او هغه ئې رد کړه نو ځکه محمود مجبوره شو چی ددې قضیی د حل لیار د توری د زور و حکمیت ته

پریږدی نو پداسی حال کی چی د دواړو خواو قواوې برابری وې مخ پر مخ شول د جنګ صفونه (۲) وتړل شوه خو صرف کم شی چی

ددغو دوو متخاصمو ډلو په منځ کی امتیاز راوستی و هغه د نوموړو ډلو د عمومی قوماندانانو شخصی لیاقت و نه وه یعنی د یوې

ډلی په راس کی داسی شخص چی ټوله عمر ئې د علماؤ، ادباؤ سره

تېر کړی و وجود نه لود خو د بلی ډلی په سر کی ډیر با تجربه او جنګ ازموده او باجسارته شخص وجود

درلود د دواړو خواو تر منځ جنګ د غزنی په دشت کی په ۳۸۸ ه کال کی چی د ربیع الاول میاشت وه پیل کړ

شو اسماعیل ټوله ورځ قائم او ثابت و مګر د مابنام په هغه بختو حملو کی چی پخپله د محمود له خوا پر وسوی

شکست او ماته ئې وموندله او عسکر ئې وتښتېدل محمود فاتح شو او د غزنی د تخت مالک شو اسماعیل د غزنی

و حصار ته پناه یووړه خو کله چی دی پوه شو چی دا پناه ځنګه نه کوی نو ځکه و محمود ته تسلیم شو او محمود دده

سره ښه مهربانی او سلوک وکړ پدې توګه د اسماعیل د سلطنت ۷ میاشتنی دوره پای ته ورسیده که څه هم اسماعیل دیو نظربند شخص

با ته په ۹ مخ کی

---

۱) ګزیده ۳۹۲ مخ او مجمع الانساب ۳۲۹ پاڼه.

۲) دفریغونیها د مختصری شرحی ضمیمه.

۳) عنصری ۷۶ مخ وایی چی اسمعیل ۲۰۰ هاتیان د جګړې و ډګر ته راوستی وه.

دوست محمد [آره کی]

# د ګرمسیر جغرافیائی وضع

## «لومړی فصل»

د ګرمسیر منطقه د جغرافیائی موقعیت په لحاظ د لښکرګاه و جنوب ته په ۶۵ کیلو متری کی پرته ده چی تقریباً د هلمند د ناوې جنوب غربی سیمه تشکیلوی. د منطقی د سره څخه تر پایه پوری د هلمند نامداره سیند د شمال څخه د جنوب غرب وخواته په هغه ځای کی تللی دی او د خپلو څنډو د شاوخوا ځمکی د زراعت د پاره ښه ترا مساعدوی چی په اوسنیو وختو کی د هلمند د انکشاف د عمومی ریاست په توجه دا منطقه ښه ترا نسبت ورپخواته حاصلخېزه شو یده چی په راتلونکو فصلو کی به پوره معلومات د محترمو لوستونکو ته ورکړه شی.

د ګرمسیر منطقه یوه هواره او پراخه ورشو لری چی اکثره ځمکی ئې زراعتی او د هلمند د سیند څخه او بیری او هغه ځایونه چی او به ندی ور رسېدلی لا مزروع دښتونه پاته دی او ځینی برخی ئې چی د سیندغاړو ته نژدې دی کوچنی، کوچنی ځنګلونه هم لری چی د هغو د لرګو څخه خلګ د سونګ د پاره استفاده کوی دا ځنګلونه په برتا که لیلیز او بګت کی واقع دی.

د منطقی شرقی برخی اکثره ریګستانونه دی چی هلته په دوبی ډېره ګرمی او خلګ د ریګ د تودوالی په نسبت استوګنه نسی کولای مګر په ژمی کی کوچیان او د مواشیو خاوندان د خپلو پسو او وزو سره د مالو د څړ او ساتنی د پاره د څو میاشتو د پاره ریګستانو ته پورته کیږی او د هغه ځای د لرګو او وبو څخه استفاده کوی.

غرونه او لوړی سطحی په هغه منطقه کی نه لیدل کیږی د ځمکی سطحه ئې هواره ده. سړکونه او فرعی ویالی، کانال او فرعی لښتی هلته سته چی په آینده کی به پوره معلومات درکړه شی.

د منطقی اوږدوالی ۹۰ کیلو مترو ته رسیږی او عرض ئې د هغه نقطه نظره چی زراعتی ځمکی وی په اوسط ډول ۲۰ کیلو مترو ته رسیږی اما که د منطقی په عرض کی د شرقی خوا څخه ریګستان او د غربی خوا څخه د برتا کی دښت هم حساب سی نو تر ۴۰ کیلو مترو ډېر یږی، ۲۰ کیلو متره فقط هغه برخی دی چی انسانان ګذاره پر کوی او زراعت پر کیږی.

-[څلور ګونی حدوونه]-

د ګرمسیر د منطقی څلور ګونی حدوونه یا په بل عبارت شاوخوا حدونه چی دا منطقه احاطه کوی په لاندی ډول دی.

۱. شمال :-

د شمال وخواته ئې لا مزروع دښت او ریګستان دی چی د هلمند د ولایت د مرکز (بست) سره مښلی او یو برخه ئې تقریباً شمال غرب بلل کیږی چی د بار کزو د ناوې د ولسوالی سره مښتی دد.

۲. جنوب:-

د جنوب وخواته د دې منطقی د خانشین ولسوالی ده چی د هلمند سیند د دغه دوو منطقو په مابین کی یو طبعی حد فاصل جوړوی. د دې منطقی د غه د جنوب غرب څه برخه و

جنوبي پښتونستان ته ځان رسوي ۰

۰۳ شرق:-

د شرق وخوا ته ریګستان دی چې د غه ریګستان د ګرمسېر د منطقې مربوط او د نور اوګ تر ریګو او منطقې پورې او د شمال شرق خوا ئې د کشک نخود تر دښتو رسېږي ۰

۰۴ غرب:-

د غرب وخوا ته د دې منطقې څه حصه ریګ او مهمه برخه د بر تا کي دښت دی چې تر تاګرشک او د ب سیستانې پورې چې د نادعلي د ولسوالي مربوط دی رسېږي ۰

د ګرمسېر د ولسوالي مرکز د منطقې په سر کې د بست څخه ٦٥ کیلو متره لرې واقع دی ۰ د ګرمسېر جنوبي خوا چې په طبعي ډول سره د هلمند د سیند په واسطه یو برخه د خانشین د ولسوالي څخه جلا کوي بل کم طبعي حد فاصل لکه غودره او نور نلري بلکې د منطقې څو شاوخوا ویشونه بیله کومې علامې تعین دی ۰

اقلیم (اوبه او هوا):-

د ګرمسېر سیمه چې د هلمند د ناوې په جنوبي برخه کې واقع ده هوا ئې نسبت وشمالي برخو ته ګرمه ده مګر بیا هم باید ووېل شي چې په ژمي ډېر ساړه او د دوبي کې تاوده بادونه لري د سړو او تودو بادو علت ئې دادی چې ریګستانونه ورنږدې ی که په دوبي کې د لمر حرارت ډېر سې ریګونه تاوده کیږي او هغه بادونه چې د تود وریګو څخه تېرېږي تاوده وي او د غه ډول په ژمي کې ریګونه ساړه او هوا سړه وي ۰ مګر په عادي حالت کې د هغه ځای هوا نسبت د هلمند وشمالي برخو ته توده ده ۰ عموماً ژمې یو اندازه سوړ او لنډ وي او دوبي ئې ډېر تود او اوږد وي ۰ د ژمي بارانونه ئې ډېر لږ وي ، د زراعت او چېنلو اوبه ئې د وا ړه د هلمند د سیند داوبو څخه دي هلته د ځاګانو کندل په کورو کې رواج ندی او که چیرې دی هم خاصیت ئې د هلمند داوبو په شان دی ، او به ئې د صحت او حاضمې د نقطه نظره په اوسط ډول سره دي صحت ډېر نه خرابوي او وجود په هغه اوبو باندې بنه تر اوده کوي ۰

د هوا ګرمي: په دوبي کې د زیات حرارت په نسبت اکثره کسان بېکاره دي ۰ او اکثره وخت په دوبي کې هوا دومره تودېږي چې کم طاقته خلګ او کوچنیان د ګرمې د شدت او د هوا د خرابي په نسبت ناروغه کیږي ۰ مګر په اوسو وختو کې هغه برخې چې د درویشان لوی کانال پکښې تېر سوېدی هوا ئې د شنو ځنګو او زراعتي کښتو په سبب نسبت د ګرمسېر وآخرو برخو ته سړه وي ۰

## کلي یا د انسانانو د استوګې ځایونه

د ګرمسېر منطقه چې یوه پراخه ورشو لري او وسعت ئې زیاد دی دا منطقه د انسانانو د استوګنې د نقطه نظره پر متعددو کلیو باندې وېشل سوې ده چې په هر کلي کې د انسانانو یو جمعیت ژوندون لري چې د هغو کلیوالي ژوند کلیوالي شکل لري ۰

د کلي د کورو احاطي معلومې دي چې هر کور مختلفې برخې د انسانانو او حیوانانو د استوګنې او ساتلو د پاره لري ۰ و هر کور ته نږدې یوه کچنې مزروعه چې د هغه کور مربوط دی هم سته چې په هغه کې یو کچنی فارم جوړوي ۰ کورونه په یوه کلي کې یو او بل ته نږدې جوړوي چې یو بیضوي شکله خط تشکیلوي د کورو د خط په مابین کې یوه پراخه ورشو لري چې د کلیوالو ځوانانو په سله کارو څخه د مازیګر په وخت کې د بازیو او غیرو ایستلو د پاره

هلته سره راغونلیږي اود سپوږمۍ په شپه شپږ ی د کور و څخه راوزي هلته ملي اتڼ کوي اوسندري وائي .

د کلیو ترمنځ عموماً فرعي لاري دي چې خلک تک او راتک ورباندي کوي مګر په بعضو ځایو کي د کانال دغاړي اود زابرو دځنلو و سړکان هم یو کاي د بله سره منلوي، دګرمسیر دمنطقي مهم کلي په لاندي ډول سره دي .

شملا ن :-
وشمال غرب طرف ته دهلمند دسیند پر راسته څنډه پروت دی چې نفوس ئي لږ اوزراعتي ځمکي هم ډیري ندی .

هزار جفت :-
دا کلي دولسوالي مرکز تـه نژدې اودخلکو نفوس ئي زیات ارشو ئي پراخه اوزراعتي ځمکي ډیري دي ، کلي ئي دوي برخي دي یو ئي (هزارجفت علیا) اوددوهم ئي (هزارجفت سفلی) نومیږي چې د دواړو ترمنځ ددرویشان کانال تیر سویدی .

خارکو :-
دا کلي دمنطقي دشمال غرب وخواته د ولسوالـي دمرکز څخه تقریباً یـو نیـم کیلومتر لیري پروت دی نفوس ئي لږ اوډېر لوی نه دی .

ده ذکریا :-
دا کلي دخارکو وجنوب ته پروت اود کانال شرقي طرف ته پسی اوږد سـوی دی د نفوس ا و وسعت دڅرویـه نسبت وخارکـو تـه ډېر دی .

خلیفه ځان :-
دا کلي ډېر کچني او نفوس ئي لږ دی ددرویشان د کانال شرقي طرف ته دریک په څنډه کي پروت دی د (امیرصاحب) مشهور زیارت هم هلته دی .

عباس آباد :-
دا کلي ډېر کچني اود کانال شرقي بغل ته پروت دی ځمکه ئي د زراعت دنقطی نظره لمړ ی درجه ده .

درو یشان :-
ددرویشان کلي پر دوو لویو کلیو ویشل سـویدی چې یوېي (درویشان علیا) اوددوهم ئي (درویشان سفلی) نومیږي چې دواړه ئي ډېر لوی کلي دی زراعتي ځمکي ئي ډېري اودخلکو نفوس ئي هم زیاد دی .

بر تاکه :-
دا کلي دهلمند دسیند دغرب وخوا ته تقریباً په منځنی برخه کي د منطقي پروت دی د نفوسو د مخي اوسط زراعتي ځمکه ئي کـمه او دښت ئي پوره وسعت لـري کچني کچني ځنګلونه هم پکښې سته چې لرګي ئي بوازي د سوځلو کار ورکوي .

میان پشته :-
دا کلي هم پر ما بین د منطقي پروت او ۳۰۰۰ جریبه زراعتي ځمکه لري نفوس ئي اوسط دی دوي برخي لري لوړه میا پشته او کښته میان پشته .

کشتي :-
دا کلي یو کچني ځای اومحدوده ساحه لري خلک ئي هم کم دي .

ټو بي :-
دا ځای ډېر کچني او چندانی شهرت نلري .

جوی گرم :-
دا کلی یو کوچنی ځای او د لوی درویشان ضمیمه دی.

لکی :-
دا کلی د ګرمسیر په ما بین کی یو لوی کلی دی چی د کانال د لاړو بغلو ته پروت دی ارشو ئې پراخه، خلك ئې ډېر زراعتی مځکی هم

ډېری لری متعدد د ملاکان او خانان پکښې اوسیږی پرشاوخوا ئې د انګورو باغونه هم سته خلك ئې ثروت مند دی.

صفار :-
دا کلی تر لکی وروسته د جنوب وخوا ته پروت دی تر ټولو کلیو د ساحی او نوس د نقطهٔ نظره لوی او پراخ دی زراعتی مځکی ئې ډېری خلك ئې شته من دی. هلته زړې لوی کلاوی لیدل کیږی غالب ګمان

کیږی چی د غه ځا یونه په پخوانیو وختو کی د صفاری یعقوب لیث د حکومت مرکز ؤ یا به په کوم بل علت دا نوم د صفار یا نو د خوا پر اپښو دل سو یدی.

بنادر :-
د صفار د کلی څخه تقریباً ۱۵ کیلومتره د جنوب وخوا ته د ګرمسیر د بنادر کلی معلومیږی چی پر دوو برخو ویشلی سو یدی (بنادر-علیا) او (بنادر سفلی) چی یو د بل څخه تقریباً د دوه یا دوه نیمو

کیلومترو په فاصله سره لیری دی. د بنادر زراعتی او به د مخه ډېری لږ وې مګر اوس د درویشان د کانال څخه د صفار په برخه کی یوه نوی ویاله چی د بنادر دویالی په نامه یادیږی کش سو یده چی د هغه ځای خلکو پخپله د ضرورت له مخی کیندلی او داو بو څخه ئې د زراعت

دپاره د هغه کلی خلك استفاده کوی. د بنادر مځکه د زراعت دپاره ښه تر امساعده د، او ښه حاصلات کوی مګر د خلکو اقتصادیات ئې تر ۱۳۴۱ کال پوری د او بو د لږوالی په سبب ډېر خراب ؤ.

بګت :-
د بګت کلی د ګرمسیر په آخر کی د جنوب وخوا ته پروت دی نفوس ئې کم او زراعتی مځکی ئې پراخی او ښه حاصلخېزه دی د ګرد زراعت او به ئې کمی دا و بو د کموالی علت ئې دادی چی د مځکو سطحه ئې د سیند

څخه ډېره لوړه ده او او به په تکلیف ویالو ته راپورته کیږی د بله طرفه ویالی هم په غیر فنی ډول د هغه ځای خلکو د سیند ه څخه ایستلی دی.

لنډی :-
دا کلی د منطقی په آخر کی واقع دی چی د لږ کو کوچنی ځنګلونه پکښې سته چی د

سوځلو دپاره ئې د لرګو څخه استفاده کیږی. د دې کلی او به هم کمی او د پورتنی کلی په شان تشکیلات لری.

.................................

بند، کانال، فرعی لښتی او زابرونه :-
د هلمند د ناوې د زراعتی پروژې د انکشاف عمومی

ریاست د هلمند په منځنیو برخو او جنوبی خوا کی د قدرو ړ کارونه کړیدی چی عبارت د بندو د جوړولو او

کانالو د کیندلو د سر کانو او لوی پلانو جوړول او د زابرو د کښلو څخه دی او پورتنی کارونه چی په هر ځای

کی سوی دی د خلکو پر اقتصادیاتو ئې ښه ترا اثر اچولی دی.

د پورتنی کارونو په سلسله کی د ګرمسیر منطقه هم آباده سو یده هلته د درویشان لوی کانال او د

کانال سر بند، سر کونه، د درویشان پل او زابرونه جوړ سو یدی چی هر یو ئې ځان ته تفصیل لری.

د کانال سر بند :-

د گرمسیر په شمال کی د هلمند سیند ته یو موږه جوړه سویده چی اوبه ئی یوه اندازه را گرزولی او د سیند و شرقی خواته دری داد سپنی دروازی په مخصوص تخنیك سره نصب سویدی چی د هغو دروازو

دلاری د درویشان کانال ته اوبه ور تېریږی . داو سپنو دروازې په کانکریټو کی نصب سوی او د یوی مخصوصی مشینی دستگاه پواسطه چی هلته ور ته نصب سویده د کلکو کیبلانو پواسطه پور ته او کښته کیږی او د ضرورت په اندازه اوبه کانال ته ور اچله کوی . چی د سر بند عرض ئی ۱۷۰ متره دی .

د درویشان کانال :-

د درویشان کانال د هلمند د مشهورو کانالو څخه دی چی عرض ئی ۴۰ متره او اوږدوالی ئی ۵۳ کیلو مترو ته رسیږی داوبو د تېرېدلو ظرفیت ئی ۱۲۰۰ مکعبه فټه په ثانیه کی دی چی د گرمسیر د منطقی ۷۰ فی صد مځکی تر اوبو لاندی کوی او د صفار په کلی کی ختمیږی .

د درویشان کانال د هلمند د زراعتی انکشاف د پروژې د خوا په عصری او فنی ډول سره په عصری ماشین آلاتو باندی کیندل سویدی چی پر مناسبو ځایو باندی د خلکو د تېرېدو د پاره ډیزاینگ پلان جوړ سویدی او ددې د پاره چی د اوبو د سرعت په واسطه د کانال د تنه سطحه خرابه نسی پر مناسبو ځایو باندی د کانال پر ا فو نه جوړ شویدی چی داوبو زور ور کم کی . د کانال و دواړو خواوته زراعتی مځکی سته چی ټولو مځکو ته د کانال د دواړو بغلو څخه فرعی ویالی د خړو بولو د پاره جلا سویدی چی د هری فرعی ویالی په خوله کی یوه آله داوبو د ویشلو او لېږلو د پاره نصب ده .

## د سلطان محمود ...

د ٤ مخ پاته

په حیث ؤ اما په حقیقت کی و هر شغل او کار ته چی دده زړه کېده کوم ممانعت ئی ندر لوده مگر ده د ۳۸۹ هـ کال په آخر کی برعکس هغه اعتماد چی محمود و ده ته در لود په دسیسه کاری ئی (۱) شروع وکړه او د محمود د قتل اسباب ئی راغونډ کړی او د دغی دسیسی مشر نو یشتگین ؤ . (۲)

کله چی محمود پدغه دسیسه کاری خبر شو نو (نو یشتگین کاج) ئی په سیاست ورساوه او اسماعیل ئی له غزنی څخه و امیر ابو الحارث ته چی د جوزجان حکمران ؤ تبعید کړ او اسماعیل پاته عمر هلته په آرامی تېر کړ . (پای)

---

۱) عتبی په ۱۳۱ مخ کی وایی چی دغه دسیسه د ۳۸۹ هـ کال د جمادی-الاول په میاشت کی وروسته تر هغه چی سلطان محمود پر عبد الملك د نوح بری وموند .

۲) د دغی دسیسی څرنګوالی عتبی په ۱۳۳ مخ کی دا رنگه لیکی :

یوه ورځ محمود د اسماعیل او د نو یشتگین کاج سره د مرو د رود و خواته په ښکار تللی د تلو په وخت کی ئی نا بو بره سترگی د نو یشتگین و خواته شوې چی نو یشتگین لاس د توری پر متی نیولی او د اسماعیل و خواته د مخصوص اشارې په انتظار کی ؤ چی محمود له منځه یوسی ولی د لته اسماعیل پدې گمان چی محمود د نو یشتگین په اراده پوه سویدی نو ځان ئی بی خبره واچاوه ښا ئی چی د دغی دسیسی د جوړولو اصلی محرك امیر ابو-الحارث (منصور سامانی) وی ځکه چی د ده مناسبات د محمود سره ډېر خراب وه .

د دوېشان د کانال پر بند و شرقي خواته د هزارجفت ویاله د فني عملي دخوا کېندل سوېده چې دهزارجفت ځیامځکې ئراوبو لاندې کوي اودا ویاله هم په فني ډول جوړ سوېده ·

فرعي ویالې او لښتیان چې په ګرمسېر کې د هلمند دزراعتي پروژې دفني عملي دخوا جوړ سوېدې په مجموعي ډول دټولو تعداد ۱۴ کېلو مترو ته رسېږي ·

دبنادر ویاله چې د هغه ځای دخلکو دخوا کېندل سوېده اود دروېشان دکانال څخه اوبه اخلي په ۱۳۴۴ کال دثور په میاشت کې تکمیل سوه اوږدوالي چې تقریباً ۴۰ یا ۴۴ کېلو مترو ته رسېږي چې د خلکو پر اقتصادیاتو شاید ښه اثر وکي ·

دګرمسېر دمنطقې په آخر کې لکه بګت، لنډي دمځکو دخړوبولو دپاره ویالې سته چې دخلکو لخوا په غیرفني ډول سره کېندل سوي دي چې په ژمي کې اوبه لري او په دوبي کې چې دسیند اوبه کمې سي اوبه ډېرې لږ پکښې راپورته کېږي ·

✡✡✡

سړک، پل، فرعي لار :-

په اوسني ګرمسېر کې سړکونه، فرعي لارې اوپاخه د استفادې وړ پلان موجوددي چې په لاندنیوليکو کې تفصیل ئې ویل کېږي ·

سړکونه :-

دهلمند د انکشافي پروژې عمومي ریاست تر تاسیس دمخه د هلمند دناوې په جنوبي برخه یعني ګرمسېر او خانشین کې پاخه سړکونه نه ؤ اونه دموټرانو تنګ او راتنګ هلته کېدی که بـه کم

وخت کمه لاری موټر دګرمسېر ومنطقې ته ورتله موټروانان به دمشکلاتوسره مخامخ کېده · مګر د تېرو څوکلو راپدېخوا هلته د هلمند دزراعتي انکشاف دعمومي ریاست له خوا پاخه سړکونه جوړ سول، مهم سړک چې په هغه منطقه کې موجوددی عبارت دهغه سړک

څخه دی چې ددروېشان دکانال په امتداد پردواړو څنډو دهغه تللی او د صفار ترکلي وررسېږي چې اوږدوالی ئې ۵۵ کېلومتره دی · سربېره پردغه دزابرو پرغاړو هم سړکونه جوړ سویدی چې هرډول موټرانو عرادهجات پر تللای سي ·

پلونه :-

دهلمنددزراعتي انکشاف عمومي ریاست ترتاسیس دمخه دهلمند

د سیند څخه خلك په ډېر تکلیف دسل په واسطه (چې د کېړې اودڅووچو کېدوانو څخه به جوړ سوئ داو بو

پرسطحه به ئې د کښتۍ په ډول ایله کاوه یو یا دوه نفره به پر کښېښستل او نفر به ئې د اوبو څخه دسیند د

یوې غاړې څخه بلې ته تېر ول یـا بـه ئـې د لامبو په واسطه ځـانونه تېرول، د منقولو مالو او

مـواشیو ایول د رود څخه مشکل او پرمصرفه کار ؤ · مګر تقریباً د ۱۳ کالو را پدې خوا د لوی هلمند پر

سیند په هر برخه کې محکم او پاخه پلان د پورتني ریاست د فني عملي له خوا جوسوي دي چې دخلکو په

ژوند کې ئې ددغه نقطه نظره ښه آرا اسهولت راوستلی دی دهلمنددسیند دمهمو پلانو څخه د دروېشان پل دی چې

دګرمسېر دولسوالي مرکز ته نژدې دهلمند د سیند پر عرض باندې جوړ سویدی دا پل داوسپنې پایې لري او پخپله

د پله جوړښت د کانکریټو او د او سپنې د سیخانو څخه د ماهرو خـارجي او

پاته په ۱۳ مخ کې

ليکونکی : [کارل يونګ]
د [وږمی] ژباړه

# آيا هنر يو ډول روحی ناروغی ده؟

هنر پخپل ذات کی پوهه نده، لکه څرنګه چی پوهه ذاتاً هنر نه دی، بدې توګه نو دغه دفکر او ذهن دوه قلمروه هر يو و ځان ته مخصوصه زمينه لری چی پخپله ددوی څخه پرته توضيح کېدلای نه سی.

که موږ کله کله دروح پېژندنی او هنر ترمنځ دارتباط څخه بغيږو مقصد مو دهنر هغه برخه ده چی له خپله حده څخه بېله تجاوزه امکان لری چی تردې ډول مطالعو لاندی ونيول سی.

هغه څه چی روح پېژندنه ئې د هنر په باره کی ويلای سی يوازی دهنری ودی او پرمختګ په باره کی دی که نه دهنر په ذات او جوهر کی دسترس نسی پيدا کولای.

البته امکان لری چی دهنری پيدا ښت شرايط اود انفرادی طرز العمل موضوع دی دشاعر و شخصی روابطو ته دده دمور او پلار سره ورګرزوو، خو دغه کار د شاعر د هنری فهم له لحاظه زموږ سره هيڅ مرسته نه کوی، ځکه په ډېرو وختو کی

ددې پيوند برقرارول خصوصاً بيا دمرضی اختلالاتو په ځای کی غير ممکن دی.

روحی او عصبی ناروغی هم د پلار، مور او زامنو وروابطو ته ګرزولای سو لکه هغه ډول چی د ښوا وبدو عادتو داخلاقی اعتقاداتو او خصوصياتو، سواد او شخصی علايقو په باره کی هم دغسی کولای سو.

خو هغه څه چی د منلو وی هغه دادی چی ددغو ټولو ډول، ډول تظاهراتو د باره دتشريح او توجيه ديوه ډول وسيلی ته قايل سو، ځکه پرته له دې څخه بايد داسی نتيجه واخلو چی نوموړی تظاهرات ټول يو او واحد کاردی.

نو پر دې اساس که موږ يو هنری اثر ديوې روحی ناروغی په ډول تشريح کړو نو يا به هنری اثر يوه روحی ناروغی وی او يا به روحی ناروغی يو هنری اثر وی. امکان لری چی دغه بيان

دی يو دمنلو وړ تناقض وبولو خو هيڅ سالم عقل ئې نسی قبولولای

چی روحی ناروغی دی د هنری فعاليت سره په يوه ټل کی راولو.

يوازی ښائی روحی تحليل چی ټولو شيانو ته دخپلی حرفی اوسوابقو له مخی ګوری، روحی ناروغی يو ډول هنری فعاليت وبولی.

خو هغه کسان چی روحی ډاکتران ندی خو دفکر او هوښ څښتنان وی هيڅکله يوه مريضی پديده دهنر سره نه اشتباه کوی

خو بيا هم ددې څخه منکر ندی چی هنری فعاليت اکثره پرداسی پديدو باندی تکيه لری چی د روحی پديدو سره کوم چی د

روحی ناروغی څخه را پيدا کيږی شباهت لری، بدې کی شک نسته چی د «فرويد» په وسيله د طبيعی

روانشناسی د لارښوونو کشف د ادبی مؤرخانو په کار کی تازه پرمختګ راوړ او هغوی ئې د

شاعرانو د ژوند د دننی اوخصوصي حوادثو دیوې برخې سره د هنري آثارو دځینو خصوصیاتو ومرتب کولو ته تشویق کړل .

البته زه ادعا نه کوم چې دغه شخصي تاروپود دی چې دارادې له مخې او یا په غیر ارادي صورت دشاعرانو

په آثاروکې موندل کیږي ډیر عمر دمخه لا د شعري آثارو د علمي مطالعې په اثر کشف سوی دی لیکن د

فروید کار و اجازه راکړله چې د خارجي حوادثو تاثیرات دی په ډیر ژور او عمیق ډول حتی د هنري

آفرینش د وړوکینی تر دورې پورې ووینو . پدې توګه د روح پېژندنې کار او هنري آثار له خپلې موضوع

څخه لیرې کیږي او بحث و یوې کلي انساني زمینې ته کشوي چې هیڅکله د هنرمند خوی ندی او مخصوصاً بیا

د هنر له مخې هغه هیڅ اهمیت نلري باید اعتراف وکړم چې دخپلو تجربو څخه وماته دا ثابته سوېده چې د هنري

آثارو په مقابل کې د حرفه ای نظر او کتنې میرول او د ژوند په زمینه کې د علمیت د قانون څخه سرغړول آسانه کار نه دی خو په پای کې ودې نتیجې ته رسیدلی یم چې منحصراً د ژوند د

اکتشافي روح پېژندنې انطباق او په کار اچول د انسان د پاره یو عاقلانه اما د هنري آثارو په باره کې بنه کار نه دی.

د [نورجهاني] ژباړه او لیکنه

# په مغولي دوره کې د کندهار

## هنري څهره

دمغولو دوره په خاص ډول د بابر د اولادې امپراطوري په هر ځای کې د هنر او ادب یوه دوره وه .

هغه مهال چې بابر دافغانستان له لارې هند ته د فتوحاتو لپاره تلی نو په موجوده کندهار کې ئې د سرپوزې په غره کې د چهل زینې دالان وکیندی خو دا کار لا پوره پای ته نه ؤ رسیدلی بابر مړ شو .

تر بابر وروسته د هغه زوی همایون د شیرشاه سوري له جګړو څخه ناآرامه ؤ خو کله چې د بابر لمسی اکبر مغولي پر تخت کښېنوست نو له یوې خوا آرامي شوه او له بلې خوا دده هنري ذوق دې ودې ته وګماریه چې خپل د ربار ښه سم کړي . اکبر د خپل نیکه هغه نیمګاره دالان چې د سر پوزې پر غره ئې د چهل زینې په نامه یږی اینبی ؤ تکمیل کړ او د کندهار حکومت به ئې همیشه خپل یو ډیر ستر معتمد ته ور سپاری .

تر اکبر وروسته د هغه زوی جهانګیر چې پاچا سو نو هم ئې د کندهار موقعیت خورا ښه پېژندی او دلته ئې د هنر خاوندان را لیږل په ۸-۱۶۰۷م کال کې میرزا غازي بیګ متخلص به وقاري او ملقب په غازي خان د کندهار په حکومت را ولیږه د « ید بیضا » مولف لیکلی دی « په لوړ همتي او سخاوت کې د حاتم نښانه وه د فضل د خاوندانو محبت ته ئې مفرطه علاقه درلوده د کندهار د حکومت په دوره کې د مترودانو (شکری ؤ) . د ماثرالامر مولف لیکي « . . . وایي چې په کندهار کې د میرزا مجلس د کمال خاوندانو مجمع وه » میرزا په ساز او آواز کې پخپله هم بد نه ؤ او سربېره پردې چې لوړ شاعر ؤ د موسیقۍ عالم او استاد هم ورته ویلای شو .

۱۳ مخ دی وګتل شي

## په مغولی ...

د ۱۲ مخ باته

په وروستی عمر کی دونه عیاشو مخصوصاً دښځو د مجلس ډیر لیوال و د ماثرالامر مؤلف لیکی چی: په مشروب خوړلو او دښځو سره خلوت ډیر ښکاره کړ، خو دخپل مړینی له لاسه ئی زهر وخوړل او مړ شو. دده یو مکمل دیوان چی دری ژبه د راپور په کتابخانه کی پروت دی.

ښخوا ئی ردی چی میرزا پرځان دوقاری تخلص کښیښودی په کندهار کی یو بل شاعر د وقاری په نامه اوسېدی میرزا هغه ته زردوبی، سوغاتونه اویو آس ور کړ هغه د وقاری تخلص پرېښود او پر ځان ئی د خلدی تخلص کیښود.

## دګرمسیر ...

د ۱۰ مخ باته

داخلی انجنیرانو په لاربښوونه جوړ سویدی چی ٦ متره براو ۱۳۰ متر اوږدوالی لری. سربېره پردغه دګرمسیر په سیمه دروېشان د کانال پرمناسبو ځایو باندی متعدد پاخه پلان جوړ سویدی چی خلک د تګ او راتګ استفاده ځینی کوی.

فرعی لاری :-

په ګرمسیر کی پر فرعی لاری عموماً هغه لاری دی چی ۲ کلی یو د بله سره منښلوی، یا د کلیو څخه عمومی سړک ته راغلی وی دالاری عموماً د انسانانو او مواشیو د تګ او

راتګ په واسطه جوړی سوېدی فرعی لاری د کلیو تر منځ پر یوه لنډه فاصله جوړېږی چی ځینی ئی بخی اود کلو نو را پدی خوا پاته دی او بعضی د دوبی په موسم کی جوړېږی

او په ژمی کی د ختو، بارانو او یا هغه ځکی چی دا موقتی لار پر جوړه سوی وی وکرل شی د منځه ځی. [پاته لری]

## آیا پوهېږی؟

علما دیولړ تحقیقاتو په اثر پدی حقیقت پوهېدلی دی چی یو متوسط انسان کولای شی د ۳ ساعتو دپاره د فارنهایت په ۴٦ درجو او بو کی ژوندی پاته شی.

✡✡✡

دیولړ تحقیقاتو په اثر دا خبره اثبات ته رسېدلی ده چی د المپیک لومړی ریکارډ شوی لوبه له میلاد نه مخ کی په ۷۷٦ کال کی سو پېده او هغه د ۲۰۰ مترو ځغاستی لوبه وه او یونانیانو له مدنی نیتی نه وروسته د المپیک دمسافو سلسله تعقیب کړه.

د نړی جوی اوضاع تر بشپړی پلټنی او کتنی وروسته دا واثبات ته رسېدلی ده، هغه اوریځی چی باران ځینی اوری په اوسط ډول سره ۲۵۰۰۰۰ زره ټنه دروندوالی لری.

✡✡✡

په شپه کی چی د هوا غبار او دوړو څخه کرڼ پاکه او چپه چپانی وی د یوه زمری غړ و مبی تر ٦،٥ کیلو مترو پوری اورېدل کیږی.

✡✡✡

تقریباً د ۳۰ زرو غماشو د وزر دروندوالی یو ګرام ته رسیږی.




ښاغلی [نثاری]

# طوفـــانی مینه

یو طرف می ډېره حیرانی شوله
بله خوا می مینه طوفانی شوله
غېږ د امیدو چې ورته خلاصه ده
هغه آرزو ولاړه ارمانی شوله
سترګې می خپل غم زړه می خپل غم کوی
ګوره می په تن کی ځان ځانی شوله
یار قیمت، دیدار قیمت، وصال قیمت
یو زما د اوښکو ارزانی شوله
تا که هرڅه کړه زه خو به ویاړمه
خاوری می په تا پسی ځوانی شوله
ای رقیبه زما دی که ماتم ولید
ستا هم راښکاره مسلمانی شوله
ما ته ئې د مخکې سرسور اور کړلو
دا خو آسمانی وه آسمانی شوله
څوک به ئې په ښکلی مخ پتنګ شی اوس
شمعه په فانوس کی زندانی شوله
سوال می د بوسی نثاری ونه کړو
ژر راته پېغور پښېمانی شوله

## د غریب ـــ ټاټوبی

خدایه ستا په لوی جهان کی
چی ودانی ښنگلی دی !
د مزدور د لاس تهاکی
د معمار تودې خولی دی
✡✡✡
دا په ښ کی چی گلونه !!
بهارونه تری سازیږی !
د باغوان د زړه په وینو
آبیاری مومی غوړیږی
✡✡✡
مگر واك د بویو لو
په قسمت د باغوان نشته
د غریب سړی ټاټوبی
ستا پرمځکه، آسمان نشته

پوهندوی [رشاد]

## د دردونو ـــ افتخار

اشنا ساقی سه چی خمار لرمه
دزړه په سر د غم غبار لرمه
ما ته دحرم نصیحت مه کوه
زه له خپل ژوند سره قمار لرمه
له اوره ډکی کړه پیالی دمیو
چی نن د سولو انتظار لرمه
له هوښیارانو تښتېدلی یمه
له لېونیو سره کار لرمه
ملا که ویاړی دجنت په حورو
زه د دردونو افتخار لرمه
لکه ډېوه سوځم او ژوند کومه
کاروان دا وښکو سره لار لرمه
له دی نازکو خیالونو سره
دگل په پاڼو کی مزار لرمه

ښاغلی [لایق]

## شپه

شفق څر ښکاریږی ...!
ماښام سو ...!
شپه تیاره سوه ... هرشی پټ
سو ...!
هری خواته غلی غلیاده ..!

حیوان پرپو تل ...!
مرغانو په ځایو کی ځانونه
غلی کړه ...!
خویدازی بلبله ..!
کری شپه وینه وه، او خوندور
سروزئی کاوه ..!
چی .. ! خاموشی غوړورته

نیولی ؤ .
ستوری هم ځلېده ..!
د آسمان مېرمنی هم مخ لغ
کی ..! وره لری سوه، او
سپوږمۍ ښکاره سوه ..!
پرتیاره ئې خپله سپینه رڼا
خپره کړه ..!

[ملتېن]

## وریځ

وریځی ما ته ویل: زه محوه کېږم .
شپی ویل: زه دسپېدې په منځ کی پټېږم .
ځنگل نارې کړه: زه دهغی ریښی د نښی
په توگه په مطلقه خاموشی پاتېږم .
عمر می راته وویل: زه د خپلو ټولو
خواهشانو په راټولو لو مړ کېږم .
ځمکی وویل: زما خاوری هره شپه ستا
آرزوگانی او هیلی مچوی .
عشق فریاد وکړ، ورځی تېریږی او زه به
ستا په انتظار کی یم .
مرگ وویل: په بحر کی ستا د ژوند
ملاح یم .

ښاغلی [الفت]

# د سبا فکر

پسله څو ورځو به نه ستا ږول او سینګار پاتی سی
نه به زما زړه کښی د عشق دغه انګار پاتی سی

بهار دحسن به دی تېروی تازګی به نه‌وی
نه به ګلونه، نه بلبلی، نه مالیار پاتی سی
مسته لیلی به‌سی بوډۍ‌ورته به نه‌ګوری څوك
نه به سپین مخ، نه توری زلفی په‌رخسار پاتی سی

ړوه به مړه سی د محفل، غلی به‌.ی سازونه
نه به رقیب‌وی، نه به‌زه، نه به‌اغیار پاتی سی
نه به‌ساقی، نه محتسب‌وی نه هوښیار او نه مست
نه به رباب، نه به کتاب، نه به‌خمار پاتی سی

داحال به نه‌وی څه چی‌دی‌هر څه به بل شان نه‌وی
یو پښتانه به په قومو کی خوار وزار پاتی‌سی
نور به موټرو طیارو او جهازونو کی ځی
د پښتون مخکښی به‌وی خره‌دی به‌خر کار پاتی‌سی

هر څه به نوی سی‌زړه اوضاع به‌نه‌وی پاتی
پښتون به دغسی کوتك او کوتکمار پاتی‌سی
نه ئی طبیب سته نه دوا نه د علاج څه فکر
د ناپوهی‌په رنځ‌اخته به‌دا بیمار پاتی‌سی

په پښو اغزی په لاس تنها کی دپښتون دتېر
تر ډېره وخته به‌د پلار نیکه یادګار پاتی‌سی
زه به یم‌مړ ما نه به نور څه چاته پاتی نه‌وی
زه‌ما میراث به‌خپل پردی ته‌دا اشعار پاتی‌سی

ښاغلی عبدالباری

# د صحرا تجلی

ددې ښار څخه د باندې ولاړم
مخ می و تورو کنډوالو ته و نیو
غوښته می لږ ګړی ېڅمه سمه
ځکه می مخ و تورو غروته و نیو

د هغو تورو کنډوالو په منځ کی
د هدیرو د شهیدا نو سره
د هغو لوی لو یو قبرو نو تر منځ
د تور لحد بندی وا نا نو سره

هلته یو ښکلی ګلالی ډېغله وه
چی نیمه پټه وه زړو جامو کی
په آرامی می ځنی و پوښتله
ګلالی څه کوی دې تورو غرو کی

د غریبه ډک ستو نی ئې خلاص کی راته
پر سرو شونډا نو ئې غاښو نه کښېکښل
دلالی ګل غو ندی ئې ستر ګی سرې شوې
یو وار ئې پورته بیا ئې کښته کتل

بیا لی د اوښکو ئې را ډ کی سو لی
ځینې لږ پزه سوی را وڅڅېدیه
بانړو ئې یو له بله کښی کښېل سره
ګلالی ستر ګی ئې را واړولی

درې ورځی کیږی بابا جان می مړ دی
زه د کفن پیدا کېدو د پاره
دلته یم نا سته تصور جهان کی
دوړی نس د مړ ېدو د پاره

# نوی ژوند

وخت بی وخته یو وړمه چرته نه راشی
تری پیدا ځما په مات وزر کښی ساسی
معلو میږی چی ځما بڼی الوزی
تر نه مخکښی به یو نوی ژوند پیدا سی

# خبرداری

هر طرف ته خاموشی چپه چپتیا ده
د اوبو مخ چپ ولاړ لکه میدان دی
یو هوښیا ر ماڼرګی په چغه وایی زر کړی
سمندر ده ساه را کښلی جوړ طوفان دی

«« ( [ ] ) »»

«نوی نثر»

# د سهار سپېدې

زما په فکر دسهار سپېدې دهغه نور له جنس څخه دی چې دعشق له طلوع څخه په زړه کې ځای لري ددوستی هنداره، دګلزار هوا محبت او وفا ده، روڼې اوښکې دی چې د نورو پر تورو بختو تو ئیږی ·

یوه غم آوره آه ده ! چې د مظلومانو پر بېچارګی خیژی ، او یا هغه زړه دی چې د ناامیده زړو په تسلی لګیا وې ·

بناغلی حمزه

## ژاړم پداچې ته خندا نه کوې

بی شکه مـا دغه خطا کړېده — چې تا جفا کړه مـا وفا کړېده
نن می په عمر ستا رضا کړېده — چې می خپل مرګ له دعا کړېده
تا کـه د ظلم انتها کړېده — ما په تسلیم کښې ابتدا کړېده
داچې سم‌سم راته نظر نه کوی — ښکاری چې تا می دزړه غلا کړېده
ژاړم په داچې ته خندا نه کوې — خاندی په داچې ما ژړا کړېده
تاتماشه د تماشو کړه په بام — مـا تمـاشه د تمـاشا کړېده
کومه وعده دی مادروغ ګڼلی — کومه وعده دی په رشتیا کړېده
ما پرېشان په ځنځیر کلك وتړه — د تورو زلفو می سودا کړېده
چې خپل غزل دچا نه‌واورم حمزه — وایم چې چا هسې ویـنا کړېده

## ملی اشعار

که ګنجونه دقارون درته انبارشی
په هر لوری غورزوه په سعاوت
نادان به ئې پریدی روسته و بل ته
عاقلان په وړاندی بیائې خپل دولت

که راحت غواړې په ځان قبول کړه
بې محنته هیڅوك نه مومی راحت

که آسمان دی دزمری په خوله کښې ورکا
دزمری په خوله کښې مه پرېږده همت

د همت ذخیره واستوه د وړاندی
دا یوځو ورځې ژوندون دی غنیمت

که ژوندون دی هم هغه دی په جهان کښې
چې یادېږی د سړی خوی وخصلت

# نه یو وزبه،

در بغه گل به په گلزاروی موږ به نه یو
دبلبل به پری چغار وی موږ به نه یو
زلمی جونه به سیلونه د صحرا کا
غرادوبئت به لالهزار وی موږ به نه یو

خوك به ږدی تازه گلونه په اوربل کښی
چا به ایښی پر دستار وی موږ به نه یو
دزړه یار به می افسوس پرمزار وکړی
آوره لمبه به ئې خونبا وی موږ به نه یو

گلرخان به گټی ناز گټی نیاز کړی
عاشقان به سل هزار وی موږ به نه یو
چی عنقا غوندی مرغان ئې په دام نیلی
هغه زلفی به تارتار وی موږ به نه یو

چی مجلس مو په کښی کړله سو نیاز منو
روغ ولاړ به هغه دار وی موږ به نه یو
د دنیا بازار به مرگ دچا سوړ نه شی
تل به گرم دا بازار وی موږ به نه یو

یادگاری به په جهان کښی «پیر محمد»
دا زموږ شیرین گفتار وی موږ به نه یو

باغ د گلو به سموری موږ به نه یو
د مرغانو به پری شوری موږ به نه یو
ونی بیا به شگوفه د نوبهار شی
پر نری شمال به اوری موږ به نه یو

بورا گان به دبهار په ژبه گلونو
یو تر بل به سره خوری موږ به نه یو
رنگار نگ میوې به ونیسی بناخونه
ډك له پانو به نسکوری موږ به نه یو

شا په شا به آشنایان سره تېرېږي
د یارانو حال به نوري موږ به نه یو
عاقبت به د چندنو ونې پرېوزي
هې سوران به کوربکوري موږ به نه یو
کافران به همېشه «عبدالعظیمه»
ددوږخ په اور به توري موږ به نه یو

ښاغلی [وحید]

# د مځکې کره

معما که معجزه یې څه نخره ئي
له حیرته یې ك شان که ننداره ئي
په ساده بڼه چې هومره زیبا ښکاري
د قدرت په لاسو جوړه منظره ئي
تر لمن لاندې پراته دي پټ اسرار دي
د انوارو خزانه هسې سپېره ئي

مغلوب سوي تا ته لوی، لوی طاقتونه
په عقلونو کوی لوبې مسخره ئي
د زړونو ګردنونه دې مات کړي
د قدرت په لاسو جوړه خمیره ئي
څه دي وبولمه څه یې نه پوهېږم
ګویا نغښتې څه مرموزه اشاره ئي

حقیقت چې به دې څه وي «وحید» وایي
نوم دې څکه د سپېرې مځکې کره یې

نور احمد «سوځند» ژباړه د تاریخ یوه پاڼه

# رنسانس او علتونه ئې

لمړی فصل

کوم وخت چې موږ په تاریخ کې د رنسانس د کلمې سره مخامخ کیږو د هغه څخه مراد یو تکاملي تاریخي مرحله ده چې د پنځلسم قرن او د شپاړسم قرن په اوایلو کې برحاله ده.

د رنسانس څه باید داسې فریب ونه خوړل شي چې د شپاړسم قرن پخوا په قرون وسطی کښې ادبیات مړه وه او د ۱۵ (قرن) په اواخرو کې راژوندي شول بلکه داسې نده یعنې رنسانس د ادبیاتو او صنایعو ژوندي

کیدلو ته نه وائي، بلکه د هغو د بڼې د تغیر څخه عبارت دي ولې چې په قرون وسطی کښې د خپل مخصوص طرز سره سره په کافي اندازه ترقي کړې وه.

مګر مهمه موضوع دا ده لکه څنګه چې موږ عقیده لرو چې د تاریخ په سرعت کې انسان مهم رول لري نو همداسې ځینې ماهرو او زبردستو صنعتګرانو او ادباوو د اکاروان په چټکۍ او موفقیت سره رهنمائي کړی څو چې هغه مسیر ته چې باید په یوه زیات وخت سره ئې طی کړی وای په لږ وخت او کافي سره تر تیر شول.

(یعنې پدې وخت کې د تاریخ د لویو او مترقي شخصیتو په واسطه په ادبیاتو او صنائعو کې یو بارز تحول پیښ شو چې دا تحول د رنسانس په نامه سره یاد کړل شو).

رنسانس د لمړي ځل له پاره د ایټالیې څخه شروع او وروسته ئې په فرانسه او المان کې توسعه پیدا کړل چې پس له هغه هسپانیې هالنډ او نورو ممالکو ته ورسیدلی، او د تاریخي د یوې مهمې او ځلاندي دورې څخه شمیرل کیږي.

باید و وایو چې د دې دورې د شاهکاریو مثال تر پېړیو را وروسته پیا هم نه لیدل کیږي.

د بله طرفه که ابږ څه ځیر شو دا راته واضح کیږي چې د دې ځلاندي دورې وافکاري او د دماغ ته د عمل په میدان کښې څومره انکشاف ورکړ شوی دی.

---

دوهم فصل :-

د رنسانس علتونه :-

د صنایعو او ادبیاتو ظهور په شپاړسم قرن کې البته ډیر عوامل لري مګر موږ ئې هغه عمده علتونه چې د څیړنې وړ دي مطالعه کوو.

۱)- څرنګه چې موږ د ادبیاتو او صنایعو تحول د تاریخ په پاڼو کښې تر مطالعې لاندې نیسو نو په تر ا واضح کیږي چې دا دوره د تاریخ محصول او په ادبیاتو او صنائعو کې د اتکامل او ابتکار د مترقي تاریخ یو بشپړ ښکارندوی دی.

۲)- دوهم عامل دا وو چې د شپاړسم قرن هغو پیاوړو اشخاصو چې د رنسانس علمبرداران ورته ویل کیږي صنعت ئې و اعلی درجې ته رسیدلی و.

۳)- په پنځلسم قرن کې هغه قدیمه اثار چې د قرون وسطی د خلکو له پاره کشف او د صنعتګرانو او نویسندګانو له پاره ئې یوه نوې لاره پرانستل چې پدې ضمن کې د چاپ د ماشین اختراع د دې افکارو او معلوماتو د پراختیا له پاره یو مهم رول لولوباوه.

۴)- درنسانس مهم اوعمده علت د څېړنو ، فیـو ډالانـو اومتنفذینو شوق ؤ دصنعت سره ځکه چې ذکر شوو اشخاصو دخپل طبقاتي موقف پراساس دښکلو قصرو، عمارتو او کورو په فکر کې وه اوهم ئې غوښتل چې پخپلو ماڼیو کې د خپل فرحت پر اساس دښو تابلوګانو اویا خپلو نیکونو مجسمې، ودروي اویا ئې تاریخونه را ژوندي کړي .

چې البته دا ټول هغه عوامل دي چې د صنعتګرانو او ادباؤ حمایه ئې دلوړې طبقې د پاره ضروري کول اوهم ئې یوه زیاته اندازه پیسې وهغوی ته ور کولې

چې تاریخ د وی حمایه دلوړې طبقې له خوا داسې تشریح کوي : کوم وخت چې په ایټالیه کې د رنسانس ددورې یوستر شخصیت (سلیفنی) په قتل سره متهم شوی و ددې د محکمې په جریان کې پاپ داسې ووېل :

چې داسې بېګانه اشخاص لکه سلیفنی نه باید د قانون مراعات وکړي یعنې سلیفني قانوني مسئولیت نلري چې البته دا قصه پورته موضوع ښــه ترا واضح کوي .

په تاریخ کې هغه اشخاص چې درنسانس ددورې د صنعتګرانو اوادباؤ حمایه ئې پرغاړه وه د (مستوقینو) په نامه سره یادیږي چې مهم ئې په فرانسه کې د (والوا) د کورنۍ شـهزاده ګان وه .

اوهمداسې په ایټالیه کې د (مدیچي) د کورنۍ اوداسې نورو څه عبارت دي .

دریم فصل :-

درنسانس ددورې اخلاق :-

ددې ځلانده تمدن سره د لوړې طبقې له خوا د اخلاقو فشار بې رحمي، قتل، خیانت، زجر په کافي اندازه ملګري و .

حاکمې طبقې پر محکومو طبقاتو په بې نهایي توګه ظلم کاوه او دخپلو اعمالو او اهدافو د پیشرفت په لړ کې ئې د هرې ممکنې وسیلې څخه کار اخیستی .

چې عمده مثال ئې په ایټالیه کښې (سزا ربرژیـا) دی چـې د (الکسندر ششم پاپ) دزامنو څخه و ویلای شو چې دا شخص درنسانس ددورې دظلم ، خیانت او نورو عیبونو یو لوی ښکارندوی دی . هغه انسانان چې دده په امر اویا دده په لاس سره وژل کېدل تر شمیر زیـات دی چې ددې کار د پاره ئې دهیمش د پاره یو جلاد دځان سره ملګری کړی و

چې : البــته د طبــقـې د ا وضع د تاریخ په رڼا کې تیریدل او تاریخ دهمداسې اعمالو په مقابل کې عکس العملونه ښودل .

څوچې داسې وخت را ورسید چې نور نو محکومې طبقې او تاریخي جبر اود محکومې طبقې او تاریخ عکس العمل کرار ، کرار شرائط څه ښه کول .

څلرم فصل

درنسانس ددورې مهم ادبـا ، صنعـتګران او مؤرخین :

په شپاړسم قرن کې په ایټالیه کې لاندې لیکوالان موجود وه چې درنسانس ددورې ستورې ورته ویل کیږي .

۱)- آریوسټ (۱۰۳۳-۱۴۷۴) چې په ۱۵۱۶ کال ئې د شارلماني جنګو موضوع داعرابو سره د تاریخ په توګه ولیکل .

۲)- تاس شـپیټه کالـه وروسته د صلیبي جګړو تاریخ ولیکی .

۳)- کیشارډین یوبل سیاسي شخصیت دایټالیې د جنګو موضوع او په هغه وخت کې کې دایټالیې سیاسي اخلاق په یوه (شهزاده) نومې کتاب کې ولیکل .

۴)- ماکیاول هـم د ایټالیې یوستر مؤرخ شمېرل کیږي .

# د خندا !!!

# پلوشې

د محمد ناصر [ نصرت ]
ژباړه او ټولونه

## د پاتـا مجلس

یوه ښځه دخپلو همسایګانو کره ورغلې
کهکوری د کورښځې دشکایت خوله خلاصه او
په ساندو کی وایی چی:-

« په فلانی کور کی د پاتا مجلس دی؛ خو
زه نه توره چادری لرم، نه تور پوړنی او نه
یو بل تور ټو کر چی وا ئې غو ندم ».

همسایه ښځی ورته وویل چی:-

هلته خو ستا تنګ ته ضرورت نسته، ځکه
زه چی درته ګورم هم دا دلته دی د پاتا مجلس
جوړ کړیدی .

✡❁✡

## ډاکتر او ناروغ

ناروغ: ښاغلی ډاکتره! پر نس می ډیر
درد دی .

ډاکتر: څه شی دی خوړلی دی ؟

ناروغ: وړمه ورځ می دوه چاریکه خټکی
خوړلی دی، تاسی ئې یو چاریك وشمېری، او
پرون می دوه چاریکه هندوا نه خوړلی ده، چی
دا هم یو چاریك حساب کړه . او نن می یو
چاریك پنیر له ډوډۍ سره خوړلی دی، تاسی
ئې نیم چاریك وبولۍ او غرمه می هم نیم چاریك
انګور خوړلی دی تاسی ئې یو پاو وبولۍ!.

ډاکتر: ډیر ښه پوه سوم؛ پدې صورت به
ستا شپږ میاشتی تبـه وی، هغه درې میاشتی
حساب کړه، پسله هغه به مړسی، ته ځان ژوندی
وبوله، او کله چی په قبر کی کښېښوول شوې
ته ځان د خوب په اطاق کی وبوله، او چی
یو خروار خاوره در باندی واچول شوه هغه
بیا نیم خروار وشمېره .

✡❁✡

## مچه او چپلاخه

یو مسیحی واعظ چی زیاتره ارویدونکی ئې
ښځی او نجونی وې، وویل :-

« دغه او یه خبره هېره نه کړی چی: که یو
چا د مخ پر یوه خوا په چپلاخه ووهلاست هیڅ
قهر مه ورته کوی، بلکی د مخ بله خوا هم
ور وړاندې کړی .

له حاضرینو څخه یوې نجلۍ په لوړ آواز
ورناری او پوښتنه ئې وکړه :-

آیا دغه حکم د مچی په باب کی هم صحیح
دی ؟.

### د جزا اټاکل

یوه ځوانه نجلۍ و قاضی ته په شکایت درېدلی ورته ویې ویل چی :-

د همسایه زوی له ما څخه مچه واخیسته اوس امر وکړه چی هغه دبازخواست دپاره حاضر، او جزا ووینی .

قاضی ورته‌وویل چی: جزا ئې‌داده، ورشه ته‌هم هغه مچ کړه ځکه‌چی «جزا په‌جزاده» .

✲✲✲

### د لړم جواب

ولړم ته ئې‌وویل چی: ولی په ژمی له غاره نه‌راوزې؟

لړم ورته‌وویل: په دوبی چی راوزم څه عزت‌می سویدی چی په ژمی هم راووزم .

✲✲✲

### پسه او لېوه

یو پسه دیوه ډېر لوړ بام پرسر ناست او چی لاندې ئې یو لېوه ولید ډېر ښکنځل او بد ویل ئې ورته وکړه .

لېوه ورته‌وویل : داته نه‌یی چی زما په مقابل کی دی جسارت کړی ښکنځل کوې بلکی داستا لوړ مقام‌دی چی جرئت ئې کړی او راته وایی .

✲✲✲

### د قیامت ورځ

ملانصرالدین یوغټ پسه درلود، یوه‌ورځ دښار ځو تنه‌رندان سره ټول او سره جوړه ئې کړه چی ملا ته باید یوچل جوړ، او په پسه ئې مېلمه جوړه کړو . وروسته په‌ګډه د ملا کره ورغلی او ورته‌وئې‌ویل :-

ته‌داسی فرض کړه چی سبا قیامت سی نودا پسه به‌دی په څه‌درد وخوری؟ ښه‌داده چی نن یو باغ ته ولاړ شو هلته ئې‌حلال او ښه مېلمه پر جوړه کړو ، څو ته هم یوه‌ورځ په عیش‌تېر کړې .

ملاهم دهغو خبره منلی ، ټول باغ ته‌ولاړل او هلته ئې پسه حلال، ښه،ښه کبابونه ئې نوش‌جان کړه .

ما پښین چی هوا ښه ګرمه وه، ټولو ملګرو کالی کښلی داوبازی‌دپاره سیند ته ولاړل .

ملا چی‌د پسه له حلالولو څخه پښېمانه شوی‌وو د ټولو مېلمنو کالی ئې سره راټول کړی‌اور ئې ورته کړ .

کله‌چی رندان ملګری ئې له اوبو څخه راووتل وئې‌لیدل چی‌ټول کالی ئې‌سوځل سوی دی .

له ملا څخه ئې‌پوښتنه وکړه چی‌دادی څه کړیدی ؟

ملا ورته وویل: تاسی ئې فرض کړه چی سبا قیامت دی نو کالی به مو په څه درد وخوری؟!.

✲✲✲

### د شکر ځای

دیوسړی‌عادت‌ؤ چی‌چا به‌یو نکل یا حکایت ورته کاوه او یا څه به پېښه‌شوه ده به‌ویل: «بیا هم دشکر ځای‌دی ښایی چی تردې بدتره پېښه شوې وای» .

د مثال په‌توګه که‌به‌چا ورته وویل چی: فلانی ځای‌اور اخیستی ، یا زلزله‌شوې، او یا فلانی‌طوفان شوی کښتی‌ډېر خلک غرق کړل ده به‌ویل «بیا هم‌دشکر ځای‌دی‌ښایی...» .

یوه‌ورځ ئې یو‌دوست د یوبل دوست نوم وراخیستی ورته‌وئې‌ویل :-

آیا خبر شوی یې چې فلانی ته ډېره بده پېښه ده ؟

- و یل یه .

دوست ئې ورته وویل : کله چې هغه له سفر څخه راتی او کورته رسیدلی ؤ ښځه ئې له اجنبي (پردی) سړی سره لیدلی، دستي ئې تو پنګچه پر را ایستلې په یوه ټك ئې ښځه، په دوهم ئې هغه سړی او په دریم وار ئې ځان مړ کړ .

سړی ورته وویل: رشتیا داخو ډېره بده پېښه شوی اود افسوس خبره ده، خو بیا هم «د شکر ځای دی ښا یې چې.... »

دوست ئې ورته وویل: چې تردې بدتره یعنې څه ؟

سړی ورته وویل: چې تر دی بدتره هغه ده چې د اجنبي سړی پر ځای زه او یا ته وای .

✡✡✡

## عذر تر ګناه بدتر

یو سړی خپل یو ګران دوست میلمه کړی، او کله چې له یوی او بلې خوا سره ګډ شوه، ناڅاپه د موسیقی آلاتو (ویلون) یو داسې بږغ ترغوږ شو چې خورا ناموزون او د اورېدو نه ؤ میلمه وویل :-

ویلون مې اوریدلی ؤ لیکن نه په داسې رقم چې د ویلون له بږغ څخه دارویدونکی زړه ماتوی.

د کورخاوند وویل ډېر ښه. زه به دستي خپلې ښځې ته وو ایم چې نور ستاسو د تکلیف سبب نه سی .

میلمه چې هیڅکله دا تصور نه کاوه، چې ویلون بږغونکی دی د کورد خاوند ښځه وی ډېر خپه شوی، او ددې د پاره چې خبره رد کړی وئې ویل :-

و بخښی زما مقصد ویلون بږغونکی نه ؤ بلکې هغه څوك دی چې دغسې نا کاره ویلون ئې جوړ کړیدی.

د کورخاوند وویل : بیاهم وبخښی ځکه چې دغه ویلون ما جوړ کړی .

✡✡✡

## بد شکل

دوه نفره چې دواړه ډېر بد رنګ او بد قواره وه د جنګ میدان ته د جنګ کولو د پاره سره حاضر شول یوه و هغه بل ته وویل :-

په یوه دلیل نه غواړم چې ستا سره جنګ وکړم هغه دا چې که ته ما مړ کړی. زه به مفت له لاسه تللی، هیڅ فایده به می نه وی کړی . او که زه تا مړ کړم بیاهم ما ته لوی تاوان لری، هغه دا چې تر تا وروسته به زه په ټوله دنیا کی ډېر بدرنګ او بد قواره اپسم .

مقابل نفر چې دغه دلیل واورېد، شین له خندا تللی او یو له بل ئې په غېږ کی سره ونیول .

✡✡✡

## د همسایه د بګك

یوه مکاره ښځه د همسایه کره ورغلی، او ورته ویې ویل: چې زموږ کره ډېر مېلمانه راغلی، اما نتآ یو لوی د بګك غواړم . همسایه ئې هم یو غټ د بګك ورکړ .

دوې ورځې چې تېری شولی، مکاری ښځی هغه لوی د بګك او یو بل کوچنی د بګلی د همسایه کره ور وړل .

همسایه ښځی ئې ورته وویل: چې دغه د بګلی چېری اود چا دی ؟

ښځی ورته وویل: کله چې ستاسی د بګك زموږ کره امانت پروت ؤ، په دغو ورځو کی ئې

دغه کوچنی د ښکلي زړه ورولي، او غاړه‌مې دی خلاصه‌وي دا هم ستاسي حق دی .

همسایه ئې ورته وویل: کور مو ودان .

بله هفته بیا د دې د پاره چې همسایه ښځه خیرات کوي هغه دیګ ئې بیا په امانت تو‌ګه وړی، او وختی چې بیا ئې ورسپاره یو بل وړوکی د ښکلي ئې هم ورسره یو ځای کړی، او همسایه ښځي ته ئې وویل چې :-

دغه د ښکلي هم ستاسي د دیګ زړه ورولی دی .

دریمه هفته ئې بیا په یوه بله بهانه دیګ امانت وړی، خو دغه پلانۍ خوله پرېښه کړه .

کله چې یو څو ورځي ور وسته همسایه ښځي د خپل دیګ غوښتنه وکړه؛ مکاری همسایه ښځي ورته وویل :-

څرنګه چې تاسي ته هم ښکاره شوه چې دیګ لنګیږی او پدې هم ښه تر اخبر یاست چې لنګون همېشه بې خطره نه وي ځکه اوس په خورا افسوس وایم چې هغه ستاسي لوی دیګ د لنګون په وخت کي سر بسته ولاړ .

---

د ۲۲ مخ پاته برخه

رنسانس او علتونه ئې

صنعتګران ئې د برامانټ لئونارد او سنی، میکلانژ څخه عبارت دی .

مهم نقاشان ئې عبارت دی د تیسین، رفائل، کرژوانژ او داسي نور .

که څه هم په (۱۶) قرن کي په فرانسه او نورو ممالکو کي لوړ علما، نویسندګان معماران او حجاران په وجود راغلل مګر په هیڅ تو‌ګه ئې دا یقا لوړ بوهانو سره سیالي نه وای کولای .

پوهاند [حبیبی]

# د میني خبري

هغه ورځ چې زوکیدم؛ ستاد میني بوغ ئې په غوږ کي راو کړ؛ زه په هیڅ نه پوهېدم کوچنوټی وم، هلته تاد امر په وړانګو اود سپوږمي په وږمکه کي قدرت راښکاره کړ . د کورد څنګه مي دونو په منځ کي یو تور کي چنجی و . . .

د شپې ئې خوږې نارې وهلي، ماده په نارو او شپېلکي کي ستاد میني بوغ اورېد . . . اوریځي پرشینکي آسمان ګرزی . . . تالندي غړ غړی وهلي . . . بر ښناوي ځلیږي . دلو یو غرو څخه خړ خړ ماندونه راځي دلته . هلته وچه مځکه اوبوی . دا ټوله ستادی . . . ټوله له تادی . بل څښتن نسته .

یو ته ئې :

ددې غره پرهاخوا، دهابل غره پرهاخوا، هو لته لیری، هو کی ډېر لیری! یو خوږ بوغ پورته کیږی !

ستاد میني لنډی وایي . . . دلته د پسرلي په شنو تالو کي سره او زرغونه ګلان غوړېدلي دی . غاټوی خاندی ریدی نڅا کوی! زه ورته ګورم ستا . . . هو کی ستاد میني بوی ځیني راځي په لو یو غرو کي! په ګړ نګو، په رغو، پردښتو پر لوړو ژورو ته نه راڅخه هېر بږی! ستا د میني سندري بولم .

هولته، هلته، دلته ته ئې او زه بل څوک نسته په یه !

یواځی ته ئې، زه هم نه یم .

---

(۴) فصل

د نړی د تاریخ څخه چې د افغانستان چاپ دی تخلیص شوید ی .

ښاغلی عبدالباری [دیدار]

# د نړۍ د یوویشت هیوادو

## دوه ویشت متلونه

کوښښ وکړه چې پر مشکلاتو بری پیدا کړې .
«عربی»

هر څوک چې د پورته ختو څخه بېریږي لاندې پاته کیږي .
«لاتیني»

کال چې آبادوي د پسرلي څخه ئې معلومیږي .
«افغانی»

هر څو نه چې قفس تنګ وي ، هغو نه آزادي خوږه وي .
«المانی»

د مېړه ایمان د سختی او تکالیفو په وخت کې معلومیږي .
«انګلیسی»

چاپلوسي لکه سایه چې انسان نه غټوي او نه ئې کوچنی کوي .
«روسی»

هوښیا په خپل ځان نازیږي او بېعقل په نورو نازیږي .
«هندی»

د نابغو او لېونیانو پیداکونکی عشق دی .
«سویډنی»

سپی د خپل خاوند په کور کې زمری دی .
«افریقائی»

وړاندې ته د څراغ روښنائي هیڅ ګټه نه لري .
«ترکی»

ډېره د آبادۍ د پاره ده ، نه آبادي د ډېرې د پاره .
«چینی»

که ډېره د کوزې سره یا کوزه د ډېرې سره وجنګوې په دواړو صورتو کې کوزه ماتیږي .
«یونانی»

فقر د عفت دښمن دی .
«آیرلنډی»

د بهانه کونکي سړي د پاره همېشه بهانه سته .
«ایټالوی»

حقیقت او د ګلاب ګل دواړه اغزي لري .
«هسپانوی»

غل چې د غلا موقع پیدا نه کړي نو ځان امین بولي .
«المغربی»

هره ګیاه د تخم څخه پیدا کیږي .
«یوګوسلاوی»

ښځه په یوه ګړۍ کښې اویا فکره لري .
«روسی»

مفلسه مسافر د غله و مخ ته هم ترانه وایي .
«جاپانی»

په عشق او خوب کې هیڅ شی محاله او ناممکنه نه دی .
«المغربی»

په هغه کور کښې چې مېلمه پال ئې ښایسته وي نو شربت ئې لاخواږه وي .
«فرانسوی»

سوی په سپیانو . لېونیان په صفتو او ښځې په پیسو ښکار کیږي .
«المانی»

ادبی ظرافت

# ښه آواز هم نعمت دی

ښاغلی «بیني قدور» چې د غزلو خورا ډېر شوق ئې درلودیوه ورځ یوه لوی استاد ته ورغی او د موسیقي تراز موینی وروسته ئې خپل همسایه ته وویل :

انلیوالهٔ نن د موسیقي استاد راته وویل : ددې لپاره چې آواز مې خورا ښه دی نو هر کله چې غزل وایم باید له ښاره د باندې ووزم .

همسایه چې ئې د بد آواز څخه خورا په عذاب ؤ ورته وئې ویل :

خورا ئې ښه درته ویلي دی زه حاضریم چې ستاسي کالي هم په خپل موټر کې در سره یوسم .

ښاغلی محمد جان

# سره میاشت او اسلام

که څیړی د اسلام د مقدس دین احکام او آوامر ته په ژور فکر وګورو دا حقیقت به په روښانه توګه را ته څرګند شي چې یو زر او څو سوه کال پخوا په هغه وخت کې چې سویسي (هانري دونانت) په نړۍ کې د هستۍ سترګې نه وې غړولې د اسلام مقدس دین د سرې میاشتې یعنی له خوارانو سره د مرستې اساس او مبادی بیان کړي وه نو ددې د پاره چې دا ادعا د اسلام د تاریخي شواهدو له لارې ثابته کړم، لازم ده چې د آسماني هدایاتو او محمدي لارښوونې او د صدر اسلام د ځینو رهبرانو د توصیو په هکله څه ولیکم :-

الیف د څښتن تعالی آوامر :

۱) خدای تعالی په خپل مقدس کتاب قرآن کریم کې چې د مسلمانانو قوي لارښوونکی دی د (بنی آدم) په خطاب سره ئې د ټولو انسانانو په منځ کې د عامې ورورولۍ اعلان کړی او له هر یو څخه ئې غوښتي دي چې د نورو ژوند ته په درنه سترګه وګوري حقوق ئې محترم وګڼي، د تنګسې او ضرورت په وخت کښې له انساني اخلاقي مرستو څخه کار واخلي .

۲) څښتن تعالی په بل ځای کښې فرمایلي دي : (متقیان هغه څوک دي چې په غیب ئې ایمان راوړی وي لمونځونه کوي او له هغه شي څخه چې خدای پاک ور روزي کړیده په خوارانو او غریبانو ئې نفقه کوي .

۳) لوی ذات په بل ځای کښې د اسلام پیروانو ته داسې لارښوونې کوي) هیڅکله به داسې نیکۍ ته ونه رسیږئ تر څو پورې چې تاسې هغه شی د پاک خدای په لار کې مصرف نه کړئ کوم چې تاسې ته زیات ګران وي او تاسې ئې زیات دوست ګڼئ او کوم شی چې تاسې د پاک خدای په لار کې مصرفوئ الله پاک په هغه باندې ښه پر ښه پوه او دانادی .

۴) لوی ذات فرمائي (هر یتیم ماشوم چې د زړه سوځۍ وړ وي مه ورته په غصه کیږئ او سائل مه ترټئ) .

۵) په بل ځای کښې څښتن تعالی بندګانو ته امر کوي چې یوازې دا کار نیکي نده چې تاسې خپل مخونه و قبلې ته په لمانځه کې وګرځوئ بلکې ایمان راوړل په خدای «ج» او رسول الله «ص» باندې او غریب او بې وزلي سړي سره مرسته کول دي .

۶) د ذکات فرضیت چې د اسلام یو اساسي رکن دی ددې همدې غرض لپاره منځ ته راغلی دی .

ب: د حضرت محمد (ص) لارښوونې :-

۱) هغه څوک چې په مړه ګیډه ډوډۍ خوري او په خوا کې ئې ګاونډی وږی وي په هغه کې کامل ایمان نشته

۲) څوک چې پر خلکو زړه سوی نه کوي خدای تعالی (ج) پر هغه باندې رحم نه کوي.

۳) حضرت محمد «ص» یوه ورځ بی بی عایشه «رض» ته وویل «ای عایشه خواران او بې وزلي د خیره مه پرېږده که څه هم نیم خرما ورکړې

# زرینه‌دانه

زه په کلي کښې د خېر غوښتلو د پاره دروازه په دروازه ګرځېدلم چې ستا زرینه ګاډۍ د ځلېدونکي خوب په څېر له لیرې څخه را ښکاره شوه او زه حیرانه پاته شوم چې دا کوم شهنشاه راغی.

زما امیدونه راپاڅېدل او دا خیال مې کاوه چې اوس نو زما بدې ورځې ختم شولې؛ زه په انتظار کښې ولاړه وم چې اوس به بې غوښتنې خېر راکړه شي او زما شاؤخوا خاورو کښې به دولت وپاشل شي.

په هم هغه ځای کښې چې زه ولاړه وم ګاډۍ ودرېدله؛
تا راته وکتل، او زما خواته را کوز شوې راغلې؛
ما داسې حس کړه، چې آخر زما د ژوند د خوښۍ لمحې راغلې ناڅاپه تا خپل ښی لاس را اوږد کړ او پوښتنه دې وکړه چې:
«تا ماته څه راوړي دي».

آه، دا څه شاهانه ټوکه ده چې تا خپل لاس یوې خېر غوښتونکې نجلۍ ته د خېر غوښتلو د پاره غځولی دی.

زه ورېږدېدم، پرېشانه شوم، بیا نو ما له خپلې ځولۍ څخه ورو، ورو د غلې یوه حقیره دانه راوکښله او تاته مې وړاندې کړه؛

خو زما حیرت هغه وخت لا زیات شو چې ماښام مې خپله ځولۍ کور تشه کړه او د غلې په خوار کوټه کښې مې یوه زرینه دانه وموندله.

ما په رښتیا وژړل او زړه مې غوښته چې کاشکې مې خپل هر څه تاته وړاندې کړي وای.

[ټاګور]

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(OCTOBER) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي

اداره: دشهیدانو واټ

دتاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال اوومه گڼه

۱۳۴۷

کالنۍ بیه

په کندهار کی [۴۸] افغانۍ

دهیواد په داخل کی [۳۳] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

پر له پسې گڼه ۹۷

دکندهار دولتی مطبعه